# د خلیلو قبیله

# اربابان



**لیکونکی**: ارباب عبدالهادی (خلیل) مشهور په (خلیل زی)

جنوری: ۱۹۹۹ ع کال

جدی: ۱۳۷۷ هـ - ش

لنډی سرک - مقصود آباد نوی کلی پجگی - پیښور

بسم الله الرحمن الرحیم

# د خلیلو قبیله ارباباں

**لیکونکی:** ارباب عبدالهادی (خلیل) مشهور په (خلیل زی)

جنوری: ۱۹۹۹ ع کال

جدی: ۱۳۷۷ هـ - ش

لنډی سرک - مقصود آباد نوی کلی پجگی - پیښور

## دکتاب پیژندنه:

دکتاب نـــوم: دخلیلو قبیله اربابان

لیکـــونکـــی : ارباب عبدالهادی (خلیل) شهرت (خلیل زی)

کمپوز اودیزاین: هوتک کمپوزینګ سنتر ګل حاجي پلازه فون ٤٥٤٦١

دچاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د چاپ ځای: آریانا کتب خانه ډهکی نعلبندی پېښور ښار

**یادونه :**

ددی کتاب په ترتیب کی دځینو مشرانو څخه معلومات راټول شوي او د مرحوم میراجان سیال مومند ( د پښتنو قبیلوشجری ) دکتاب څخه مي اخذ کړي دي .

# انتساب

د شیخ عبدالرحمن بابا روح ته چې د یر نومبالي
او مجاهد بچی دده د نسل څخه پیدا دی



# دالی

دشهید ارباب بهرام خاَن (خلیل) روح ته
چی دخپل کام شمله یی لوړه ساتلی ده

# دکتاب فهرست

# سريزه

حضرت انسان د خداي (ج) دخليفه په صفت په دنيا کي پيدا شو اود پرښتو څخه يي مقام پورته دي ځکه چي دخداي (ج) په امر د ملائيکو مسجود وگرځول شوه داچي دا سجده په کوم کيفيت وه په دی څه ويل نه غواړم خو په هر لحاظ يي مقام لوړ دي او دا ځکه چي دخداي (ج) خليفه دي.

د انساني ټولني تشکل په هر لحاظ نوي نوي بڼه پيداکوله او پر اختيا يي وموندله ان تردي چي په قومونو اوقبيلو بدله شوي ده او لاگورو به چي پا يي کوم ځاي ته رسيږي. په دي کار کي دحضرت سبحانه تعالي حکمت اولوي څرگنديزي چي د يو ادم (ع) او حوا بي بي اولاده په بيلو بيلو رنگو.ژبو. قومونو اوقبيلو سره وويشل شوه څوک په يوه ژبه خبري کوي او څوک په بله ژبه څوک تور شو اوڅوک سپين. څوک عرب شول اوڅوک عجم څوک په خداي (ج) کافر شو اوڅوک په آسماني اديانو اوکتابونو مومنان اومسلمانان.

لنډه داچي دا دنيا دومره پراخه شوه چي د تخمين اواټکل څه بهرشوه او که ووايم چي په کمي اوکيفي لحاظ يي لاتراوسه چا پاي او اول نه دي معلوم کړي يو واقعيت دي اوتحقيقات وربانديي روان دي ولېدل شي چي خبره کوم ځاي ته رسيږي؟

په انساني ټولنه کي هرکام او قبيله ځان ته خصوصيات لري په ديني اومذهبي لحاظ هم سره زيات توپير لري چي داخبري هم له چاڅخه پټي نه دي.

اجتماعي موقفونه يي سره هم توپير لري څوک خان - څوک نواب څوک سيد څوک ملا څوک يوخيل اوڅوک بل خيل ته ځانونه منسوبوي اوځانونو ته په توفق اوامتياز قايل او ځانونه په نورو باندي سريولي.

قومي اوقبېلوي امتيازات دانساني ټولونو خصوصيات دي او دالړي روانه ده اوڅوک يې مخه نه شي نيولي البته خداي (ج) چې په انساني ټولنه کې دا توپيرونه راوستي دي يوازي اويوازي د پېژاندګلوی په غرض دي چې قومونه اوقبېلې معلومې شي اوسره وپيژاندل شي او خداي (ج) ته د قرب معيار تقوي ده نه قبېلوي اوقومي لوړوالي او قدرت ،غلام او تورحضرت بلال په ډېروسپينو ازادوقريشواوسردارانو باندي چې تقوي يې درلوده خداي (ج) ته ډېر نيژدي مکرم اومعزز و.

کامونه او قبېلې جوړې شوي اوخپرې شوي اود کوچېتوب ژوندېي کړي دي د يوځاي نه بل ځاي ته کوچېدلي دي اود کلونو او پيړيو په تېرېدو هم هلته پاتې شوي او ادبرې يې جوړې شوي دي خوخپل کام او قبېلې ته منسوب پاتې شوي دي او په هم هغه نوم پيژاندل کيږي.

د خليلو قبېله هم ددي قبېلو په لړ کې د زانګړو قومي خصوصياتو په درلودلو سره يوه لويه قبېله ده او د تاريخ په اوږدو کې يې خپل قبېلوي مميزات او رسالت ساتلي دي او په پښتنو قبېلو کې دلوړنوم اوتاريخ درلودونکې دي غواړم ددي قبېلې په باب په لنډ ډول يوڅه وليکم اوګرانولوستونکوته يې ور پيژنم خداي (ج) دي زما سره په دي لاره کې مرسته وکړي.

غواړم په دي ځاي کې د مرحوم علامه استاد (الفت) يعني ګل پاچا الفت د بري پښتونخوا عالم - فاضل -ليکوال اوشاعر هغه شعر دلته کټ مټ رانقل کړم چې د مرحوم الفت صيب په کلياتو کې چې دالفت د مرغلرو په نوم چاپ شوي دي چې قومي اوقبېلوي پيژاندګلوی اواړويکوته په درنښت قابل شوي اودا يې په ګوته کړي ده چې قامونه -قبېلې اوملېتونه سره نه پردي کيږي.

# له خدایه سره

خاونده تا په انسانانو کې قومونه کړه جوړ
تا قبیلې شعبې تپې او ملتونه کړه جوړ
د ترک عرب افغان په نوم دې اولسونه کړه جوړ
تا له مرغانو د هوا بیل بیل سیلونه کړه جوړ
ځکه کوترنه ګډیږي کله زاغانو سره
بلبلې نه کړي پروازونه له کارغانو سره
په هر هیواد کې دې پیدا کړله بل شان ته هوا
حدود معلوم د دې عالم په دریابونو کړه تا
هر یو ملت دې په بل شان بل خوي بل رنګ کړ پیدا
ځینې دې تورځنې دې سپین څوک دې کړه هغه څوک دا
د هر قام زړه کې دې د خپل قام محبت کیښوده
تا په فطرت کې د انسان ملي وحدت کیښوده
د خپل پسر دې تمیز په ختیه د انسان کې وینم
د غه شعور د غه احساس په ټول جهان کې وینم
په اسرائیلو دلسوزي ابن عمران کې وینم
یا لیست قومي یعلمون ستا به قرآن کې وینم
چې تا خپل کړي هغه څوک پردی کولي نه شي
د عزیزانو مینه زړونه څوک ویستلای نه شي

قام جوړول د قــــام پالنــــه ستـــا سنت گڼـمه
دا تقـــاضـــا د طبعـــېت اود فطـرت گڼـمه
ستالــــه طـــــرفه اغېـــزه دقومېـــت گڼـمه
مېـنه د قـــام د انســانــانو خاصېـــت گڼم
ځکه فرعون سره موسي جګړي جنگــونه کړي
د قام د پاره د ډېــرو خلقــو ډېر کــارونه کړي
قامونه دي بېل بېل فصــلونه د خلقت د کتاب
ده هره نوعه او هر جنس لکه یو فصـــل او باب
په هر تصنېف او هر تالېف کي وي فصول او ابواب
د دي د پاره پیدا شــوي دي فرقـــي او احــزاب
خدایه ! ستا صنع ستا سنت په دغه شان وینمه
جي څوک ترکان او څوک عرب او څوک افغان وینمه
قومي صبغه ده ستـــاله خوا کـله تغیر قبلوی
کله یو قام د بل قام ځان بانــدي تاثیر قبلوي
هر څوک خپل فکر خپله رایه خپل تدبیر قبلوي
هر قام له خپل قامه وزیر او خپـــل امیر قبلوي
د قام په ژبه تا هــــر قـــام ته پیغمـــبر ولیږه
له خپله قامه دي هـــر قام ســره رهـــبر ولیږه
که پښتانه هر څـــومره لري پښتنو نه اوسي
که په زرگونو میلو لري دوي هغـــونه اوسي
که هغه خوا له هسکو غرو اودریابونه اوسي
زړو ته نیږدي دي که غایب له نظـرونه اوسي

نشته په شرع کي حجاب له خپل محرمه څني
ستر په کار دي له پردي او نامحرمـــه څښي
دي ظالمـان جـــي پښتـــانه له پښتنو بېلوي
ورونه له ورونو اولادونه لـه پلـرو بېـــلوي
چـړي راا خلـي او کتـري د دوي دزړو بېلوي
مومند ، مومند نه اپریدي له اپرېدو بېلوي
بو اپریدي دي په خیبر کـه په تیراه کي اوسي
مومند مومند دي پیښور که سالا لا کي اوسي
په قندهار کي که میرویس او احمد شاه بابا دي
په پیښور کي خوشحال خان عبدالرحمن بابا دي
بوشان ښکاریږي پښتنو ته که هغه کهدا دي
جي اباسېند اباسېند بولـي د دوي بو ابا دي
ورور که په کور که په لاهوروي پردي کیږي کله
په لري توب د قـرابت سلســله شکیـږي کله
گران لوستونکي د دي شعر په لوستلو پوهېدلي شي جي قام او قبيله څومره
خوږي کلمي دي او انسانان وریاندي وياړي بو دبل په خوښي خوښ او په غم بي
دردمند او غمجن کیږي
ارباب عبدالهادي (خلیل)
مقصود آباد پیښور - نوی کلي

بسم الله الرحمن الرحيم

**الحمدلله الذی بعث فی الامین رسولاً .**

**الصلوة والسلام علی اشرف الانبیاء والرسل محمد صلی الله علیه واله واصحابه اجمعین.**

امابعد : - فقد قال الله تعالی فی کتابه الحکیم :

**یا ایها الناس انا خلقنکم من ذکر وانثی وجعلنکم شعوبا و قبائل لتعارفوا ان اکرمکم عند الله اتقکم ان الله علیم خبیر ط**

سورت حجرات ایت ( ۱۳ )

د ترجمی لنډیز : - ای خلکو مونږ تاسی د یوه نارینه اویوی ښځی څخه پیداکړی یاست ( آدم (ع) حوا ) اوبیا مو کامونه او قبیلی قبیلی کړی یاست ددی د پاره چې سره وپیژنی په تحقیق سره ستاسی څخه مکرم او معزز زما په وړاندی هغه څوک دی چې د پوره تقوی لرونکی وی.

د پورتنی آیت څخه مطلب دادی چې قومی او قبیلوی امتیازات او قوت بس یوازی دنیوی خبره ده چې یو انسان به وړاندی ځان بر بر وبولی او په غریبو سلواو خلکو باندی به کلانکاری وکړی. چې دا هم په خپل ذات کی انسان

دخلکو په نظر سپک گرځوی او ورڅخه نفرت کوی ولی د پروردگار په وړاندی تور په سپین عرب په عجم غریب په مالدار او مالدار په غریب کومه برتری نه لری او د خالق تعالی په وړاندی دهغه چا مقام لوړ او با ارزښته دی چې د پوره تقوی لرونکی وی چا ته ضرر نه رسوی د ښو خویونو خاوند وی او هر وخت د خدای (ج) رضا او خوښی لټوی او د خدای (ج) د رسول (ص) د کړو وړو پابندی کوی. (**خیرالناس من ینفع الناس**) حضرت محمد صلی الله علی و سلم فرمایی چی بهترین دخلکو هغه څوک دی چی نورو خلکو ته یی خیر رسیږی . په بل حدیث شریف کی حکم دی فرمایی :

**«المسلم من سلم المسلمون من لسانه و یده»**

سهی مسلمان هغه دی چی بل مسلمان یی د ژبی او لاس د ضرر څخه په امن وی.

په اسلامی ټولنو کی هغه کامونه او قبیلی په خلکو د زیات قدر او احترام وړ وی چی یا خوی د اسلام او اسلامی ټولنی د ژغورنی لپاره په سر او مال قربانی ورکړی وی او یا په کی دعلم - دیانت او خداپرستی لپاره هلی ځلی شوی وی او عملاً په کی وی او یا خویی دخیر په کارونو په لاره کی خپله شتمنی د نورو دخیر او هوسایني په غرض خلکو ته وړاندی کړی وی او ددی لاری څخه یی دخپل رب رضا او خوښی تر لاسه کړی وی .

ما د سر په خبرو کی دخیلو په قبیلو او اربابانو باندی چی د دی قبیلی مشران دی دڅه لیکنی یادونه کړی وه نو زه چی دخیلو په قبیله باندی څه لیکم زما مطلب کوم تفوق او برتری نه ده بلکه هدف می دادی چی دا قبیله په اصلی

بنه خلکو ته وروپیژاندلی شم چی دوی څوک دی د کومه شوی دی او د تاریخ په اوږدو کی یی څه کړی دی. دا چی زه هم دی قبیلی ته منسوب یم زه به د دی خبری کوشش وکړم چې ځان ستاینه ونه کړم بلکه ځان پیژاندنه (تعارف) وکړم او هغه واقعیتونه رابنکاره کړم چی لوستونکی یی ومنلی شی نه چی د انتقاد و خولی راخلاصی کړم.

زما په دی لیکنه د دی قبیلی د پاره په نورو کامونو او قبیلو باندی د برتری هدف نشته دی بلکه یوازی او یوازی د دی قبیلی تعارف غواړم او قرآن کریم هم دی خبری ته اشاره کړی ده.

د دی خبری د پاره پوره پوره اسناد موجود دی او زه به یی په خپل وار کرام لوستونکو ته تقدیموم چی په دی قبیله کی داسی اشخاص تیر شوی دی او شته دی چی د اسلام - خلکو او وطن د بقا لپاره یی قربانی ورکړی دی. داسی خلک په کی هم تیر شوی دی او شته دی چی د اسلام د مقدس دین د تبلیغ - تشریح. دعوت او خپرونی لپاره یی په خپل وخت او زمان کی زبردست کارونه کړی دی او ډیر جید دینی علمایی روزلی او پاللی دی او ډیر صوفیان او شیخان په کی تیر شوی دی. د دی خبری ثبوت هم راسره شته دی چی په دی قبیله کی داسی اشخاص شته او تیر شوی دی چی د وطن د بچو د سالمی روزنی لپاره یی خپله شتمنی وقف کړی ده کالجونه پوهنتونونه (یونیورستی) او زیات علمی تاسیسات په کی ودان دی او لا تر اوسه ورڅخه خلک ګټه اخلی. د دی خبری ثبوت هم شته دی چی د دی قبیلی خلکو د جماتونو - دینی مدارسو او ادیرو لپاره په جریبونو جریبونو ځمکی وقف کړی دی او نن سبا ورڅخه خلک ګټی

اخلی په همدی ترتیب ددوی په شاوخوا ډیر غریب او بی چاره کسب گر لکه نجار - دلاک - گلکار - نداف او داسی نور ددی قبیلی د خلکو په شاوخوا راغونډ دی او ددوی د احسان څخه برخوردار ده و. دی او وی به چی دسیر یو په نوم یی ورته څمکی ورکړی دی کریی ریبی یی او خونی په کی جوړ کړی دی او د عزت ژوند کوی او په همدی ترتیب په دولتی پستونو کی با اقتداره او با حیثیته خلک دی.

# خلیل څوک دی ارباب چاته وایی ؟

د تاریخ په حواله اود هغه اسنادو په رڼا کې چې د ځینو اشخاصو او افرادو په لاس کې دی او څو ک ورڅخه انکار نه شي کولی د احمد شاه ابدالی د امپراتورۍ په دوره کې د افغانستان نقشه او حدود د چا څخه پټ نه دی دا چې دوخت او زمانې په تیریدو او د افغان اولس د کورنیو جاه طلبیو او شخړو په تورتم کې او د ځینو بهرنیو هیوادونو د تیغ په نیغه لاس وهنو په اثر په افغانانو او افغانستان باندې څه حالات تیر شول او لاروان دی دا خبره د چا څخه پټه نه ده او تاریخونه ورباندې لیکل شوی دی او دا پیښې په کې په پوره صراحت او اسنادو په تفصیل سره ذکر شوی ، دی او زه ورباندې دلته زیات بحث کول نه غواړم .

زما د لیکنې موضوع پورتنی سرلیک دی او په دی باب باندې رڼا اچول غواړم .

خلیل د هغه ځوی نوم دی چې د تاریخ په حواله یې په اول قدم کې د نسب سلسله ( سړبن ) بابا ته رسیږی په دی معنی چې د ښړبن څخه دوه ځامن پیداشوی دی چې د یوه نوم یې شرخبون (شرف الدین ) او د بل نوم یې خرشبون ( خیرالدین )و .او داسې روایت هم شته دی چې وایی سړبن د قیس عبدالرشید ځوی وا و د ده نور ورونه غور غښت بیټ او کورله دی او د دی خبری وضاحت په

( الفنستین ) کتاب کی چی د محترم پوهاند محمد حسن کاکړ له خوا ترجمه شوی دی لیکل شوی دی.

یوشمیر نور لیکوالان دقیس عبدالرشید ځامن دری تنه وایی چی هغه سړبن - غورښبنت اوبیټ نیکه بولي . خو انگریزی مورخ (الفنستین ) کورله هم دقیس بابا ځوی بولی.

مخزن افغانی هم په ( ۸۸۰ ) پاڼه کی ددغی خبری تائید کوی .

د کیروکتاب ( پټهان) په (۳۲) مخ کی ذکر شته دی . مخزن افغانی په ( ۸۸۰ ) پاڼه کی دامینی اوسرالف کیرو په خپل کتاب کی کرلاڼی دغور غښت څلورم ځوی بولی اوځینی نور وایی چی نه ! دی دعبدالله ارمړ تبنی زوی او مندلی شوی هلک دی. خو ماته په ټولو کی د (الفنستین) لیکنه پر ځای اود منلو وړده .

دا به ومنو چی شاعران - لیکوال هم دکامونو اوقبیلو په پیژاندگلوی کی په خپلو شعرونو او لیکنو کی دمشهورو قبیلو او اشخاصو نومونه یاده وی اوخپل تاریخی رسالت ترسره کوی لکه چی خوشحال خان ختک په دی باب په خپل یوشعر کی دا مطلب داسی ځای کړی دی چی وایی :

**پښتون په اصل کی سړبن دی**

**یا غــور غښـــتی یا بیټنی دی**

**غلجی لودی له بیټنی له نوری**

**په سړبن پوری بیا کـرلاڼی دی**

دداسی روایاتو په لړ کی داسی روایات هم شته دی چی وایی د شرخبون

(شرف الدين ) ځامن دري تنه دي او هغه اورمړ چې اصلي نوم یې عمرالدین دی - ترین او شیراني دی.

وايي چې دعمرالدين تير په لوگر - پيښور و کاني گرام کی اوسيږي .

خوځينې شجره ليكونكي ليكي چې د شرخبون (شرف الدين ) زامن دا دي ارمړ (عمرالدين ) بابړ - بړيڅ - ترين او شيراني .

وايي چې شيخ شرخبون ( شرف الدين ) ښه سړي واو شاعر هم و څه وخت چې دي دكسي دغره نه غوري مرغی ته په کډه تللو نو دا شعرونه یې ويلي وو:

بيلتانه ناره مـــي وشـــوه پـــه کـــوريانـدي
نه پوهيږم چې به څـــه وي پيــښ په وراندي
دخپلـــوانو نه بيـــليـــږم په ســـروســـتر گو
دواړه ستركي مي پـــه وينـــو دي ژراندي
اسمعــيلهســتـــا نارو مـــي زړه سوري كړ
په چړو دويرمي پري شوي د زړه مرانډي
څمه څځه اوړ ديون مـــــي دي ومـــــخ ته
ديـــانه څـــوري به اچـــوم وتـــرمـــخ ته
ستـــاياد به مـــی ســـی د زړه ســـخ ته
كه دا ځمكه اسمان ټول شي لاندي باندي

د شيخ خرشبون (خيرالدين ) په باب د پټې خزانې په استناد محمد هوتک ليكلي دي چې :

سړبن اوړيټ نيكه سكني ورونه دي داخبره زياتوشجره ليكونكو منلې ده او

دا خبره هم منلی شوی ده چی خرشبون (خیرالدین) او شرخبون (شرف الدین) د سړبن ځامن دی اودا خبره هم لیکل شوی ده چی خرشبون په کال (۳۰۵) هـ کی زیږیدلی دی اودشرخبون دزیږیدنی نیټې ته همدمره اشاره شوی ده چی ممکن دڅلورمی هـ پیړی په اغاز کی پیدا شوی وی اودا خبره هم شوی ده چی (خرشبون د ژوند په زمانه کی دهغه پلار سړبن اودهغه تره بیټ نیکه ژوندی و اودا روایات په همدی ترتیب رارسیدلی دی.

په دی باندی څه ډیری خبری شوی نظریات موجود دی تذکره لیکونکو وباندی خپل خیالات څرګند کړی دی او د اورمړ (عمرالدین) بن شرخبون شجره یی داسی لیکلی اود راویانو له خوا تسجیل شوی ده

# سربن قبایل

**الف : غوریاخیل**

**ب : - مومند .**

**ج : داؤدزی**

الف : - غوری « شیخ ابراهیم » دمخزن افغانی په ( ۸۰۲ ) پانه کی وربانڈی په تفصیل سره خبری شوی دی او شجرة النسب یی په لاندی ډول ښکل شوی دی.



نوټ:

دانفستین په قول ملاګوري دغوري پنځم ځوی دی.

او داسي روايات هم شته دی چي نه ! د شيخ ابراهيم څلور ځامن وو چې نومونه يې په لاندي ډول دی :

دولت يار - خليل - څمکني - زيراني په يوه روايت کې خليل د عمرالدين ځوی ښودل شوی دی او په دی دوهم روايت کی بيا دشيخ ابراهيم ځوی منل شوی دی اود مخزن افغان په استناد په دی باندی تاکيد شوی دی چې خليل دغوري « شيخ ابراهيم » ځوی دی او دا سهی خبره ده .

اصلی هدف دادی چې دکوم قومونو او قبايلو په باب چی څه ليکل شوی دی لکه چی دمخه مي وويل دراويانو شک او تردد دی ولی په اصل حقيقت کی دغه کامونو او قبيلو خپل تاريخی رسالت او هويت ساتلی دی او په مخ په درومی او بايد هروخت يو څوک پيداشی چی دا په ايرو کی پټی سپرغی راتازه کاندی او دحوا د ثو طوفانونه يی په ځان کی ورکی نه کړی.

د پښتنو قبايلو خصوصيات سره ورته دی او که څه فرق ولري ډير کم به وی که څه هم د پښتنو مشر پلار قيس عبدالرشيد ښودل شوی دی اودا خبره داسی کره کوی چی : -

قيس عبدالرشيد د کسی په غره کې او سيده خود خالد بن وليد چی د اسلام يوستر سپه سالار و دی يی په ترغيب او تشويق سره دحضرت محمد صلی الله عليه وسلم دشرف دحصول لپاره په کال (٨) هجری کی مکی مکرمی او مدينی منوری ته ورغلی و او درسول اکرم صلی الله عليه وسلم په حضور مشرف شوی و خپل اصلی نوم يی قيس وخود خدای (ج) پيغمبر صلی الله عليه وسلم په قيس

باندی عبدالرشید هم ورزیات کړ او تر هغه وروسته په قیس عبدالرشید باندی مشهور اوونومول شو او دا هم ویل شوی ده چی دمکی په فتح کی دمجاهدینو او غازیانو سره ملګری و او پوره توره او میړانه یی ښودلی نو ځکه خوور ته داسلام ستر لارښود حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د « پتهان » لقب هم ورکړی دی.

پتهان د کشتی، لاندنی تختی ته وایی چی د کلک لرګی څخه جوړیږی او په دوی کی هم پوره شهامت او استقامت زغم او ثبات وا و پتهانانو (پښتنو) دا ویاړ درلود خود بدهمرغه چی نن سبا .... ؟

دا ثابته خبره ده چی دخدای (ج) درسول هره خبره دمنلو ده او پښتانه ډیر کلک خلک و او دی په اسلام مین باد یانته دقوی عظم مسلمانان دی.

په ځینو کتابونو کی ددی خبری یادونه هم شوی ده چی قیس عبدالرشید بابا په ٤١هـ (٦٦٣) ع کې په کسی غره کې وفات شوی او هم هلته خخ شویدی.

د تاریخ په حواله د خورشید جهان او تاریخ مرصع په استناد د قیس عبدالرشید شجرة النسب تر آدم علیٰ نبینا و علیه السلام پوری رسوی.

او ددی خبری ضرورت به څه وی چی څوک یی مخالفت وکړی ؟

په هرحال لکه چی دمخه می ورته اشاره کړی ده دا کوم دینی - عقیده وی اومذهبی بحث نه دی چی به په کی دکفر - الحاد یا ګناه ویره وی دکامونو او قبیلود پیژاندګلوی خبره ده او تر ډیره حده کوشش اوزیار ګالل شوی دی چی واقعیتونه رابرسیره کړی شی او دا کار شوی دی تذکره لیکونکو - تاریخ لیکونکو اوشجره لیکونکو په خپل وار هاند کړی دی او زیار یی وېستلی دی اود تاریخی اسنادو په رڼا کی یی د تیارونه پرده پورته کړی ده او په دی لاره کی

یی نه هیریدونکی خدمتونه کړی چی د قدروړ دی او باید د رناوی یی وشی.

خو د بدمرغه زمونږ په څه پوهانو کی یو عجیب غوندی خصوصیات وجود لری چی نه خویی خپله خوری او نه یی خورنده ته ورکوی هغه په دی معنی چی خپله خو څه معلومات نه لری ولی د بل په لیکنه خوور ته وس بردی چی و وایی داخبره نه ده سهی ! نو بنه هلکه سهی کومه ده ؟

نو بیا ورسره د دی ځواب هم نه وی او دا بنه رویه او کار نه دی.

هغه یو دفارسی ژبی شاعر څه بنه ویلی دی :

**سرنامه عاشق رانا خوانده مکن پاره**

**بیچاره رقم کرده از خون جگـــر چیزی**

***

د څه لیکل او راغونډول څه ساده کار نه دی ستر کی وریاندی نم جنی کیږی فکر ذهن او لاسونه وریاندی ستړی کیږی کاغذ او قلم وریاندی ، مصرف شی او بالاخره ورځخه یو څه جوړ شی او بیا ورته په سپکه سترګه او حقارت ولیدل شی زما په عقیده که لویه نه وی نو وړه ګناه خو ضرور ده

زه د نقد مخالف نه یم چی نقد نه وی کره توب نه راځی خو په دی شرط چی دنقادانو سره خو د دی څه ذخیره وی چی غلط را سهی کړی نه دا چی بس په خولی ورته غلط و وایی او دسهی کولو وس ورسره نه وی نو دا کار بیا بی همتی او یادون همتی ده نه بل څه.

مونږ او تاسی د تل لپاره په محافلو او غونډو کی برخی اخلو اعماد ډیر کوو

ولی داصلاح وس او حوصله راسره یاخوبیخی نه وی او کـــه وی هم ډیره کمه او په نشی حساب وی . با لکه دهغه مقتدي خبره چي د جومات څخه راووځي او وابي:

« یره نن خو مولوی صیب څه عجیب وعظ وکړو » چی بیاورڅخه وپوښتی چی ښه کاکاڅه یی وویل ؟ یره ورکی کړه یاد خو راته نه دی خو څه عجیب وعظ یی وکړ.

نوښه خبره داده چی دانتقاد روحیه بیا وری کړو خوورسره ورسره د اصلاح لاره هم کره کړو

# خلیل بن غوری




داهم یو روایت دی وایی چی دخلیل بن غوری اته ځامن وچی په پورتنی ډول باندی تسجیل شوی دی او یو تذکره لیکونکی دا اجتهاد نه شی کولی او نه داډ ول نو مونه دځانه راپیدا کولی شی.

ددی واقعیتونو څخه څوک انکار نه شی چی داپیښی د تاریخ په اوږدو کی دکیسو په توګه دیو نسل څخه بل نسل ته انتقال شوی او تردی وخته پوری یی ځان رارسولی دی او راټولونکو ورباندی زیات زحمت ګاللی دی او دا خوشی بی بنیاده افسانی تعبیر کړو نو خو انسانی تاریخ ټول باید یوه خیالی افسانه وګڼل شی او داسی نه ده بلکه انسانی تاریخ او انسانی تشکل او ژوند یو حقیقت او دحضرت آدم (ع) څخه رانیولی بیاتر ننه او تردی وروسته چی ترڅو ددی نړی په مخ انسان ژوند کوی دا واقعیتونه به ورسره روان وی او پایی به یی داسرافیل سور وی.

قرآن حکیم په سورت حجرات کې په (۱۳) آیت کی داسی لارښوونه کړی ده چی ترجمی لنډیز یی په لاندی ډول دی.

ترجمه: ای خلکو په تحقیق مونږ تاسی د یوه نارینه او یوی ښځی څخه چی آدم (ع) اوحوا بی بی ده پیداکړی یاست او بیا مو شعبی شعبی او قبیلی قبیلی

گرځولی یاست ددی لپاره چې تاسی سره په خپلو منځونو کی وپیژنی په تحقیق سره ماته نیږدی له تاسی څخه او مکرم هغه څوک دی چې د پوره تقوی خاوند وی.

داخبره ضروری ده چې سره وپیژاندل شواو په دی کی دیر لوی راز پروت دی اوخدای (ج) ازښت دی جې په خپل مخلوق باندی یی د تقوی په جامه کی نغښتی دی.

دخلیلو په باب هم څه زیات نظریات په لاس کی دی او هری نظریی درناوی په کار دی او په خپل ځای کی ورته باید ارزښت ورکړشی.

دراورتی په روایت داشجرة النسب په لاندی ډول ترتیب شوی اوسجل شوی دی.






ددی نه چې ورپسې تر مخه لاړشو نو دی ټکی ته به رارسیږو چې خلیل په غوري مرغی کی آباد وو په اغلب گمان د باروزی ځوی شیخ عبدالرحمن دنادرابشار په دور او یا ترهغه وروسته په (۱٦٨٣) ع کی یی هجرت کړی دی او دغوري مرغی نه راغلی دی او هجرت یی کړی دی دخلیلو اوسنی علاقه به لږ تر لږه شل میله اوږده او تخمین پنځلس میله پلنه پرته وی.

دخلیلو ملکانو ته اربابان وایی تهکالو نه سپینه وري لنډی او سربند ددوی داستوگنی مشهور کلی دی او نور کلی هم شته دی چې وروسته به یی په تفصیل سره دجلاعنوان لاندی یادونه وشی.

ددوی د کر کروندی ځمکی به لومړی دباړی نه اوبه کیدلی خواوس د ورسک دبند څخه ویالی (نهرونه) راوتلی دی او ددوی ځمکی وربانڈی خړوبه کیږی او ښی ودانی دی.

د تاریخ په اوږدو کی دخلیلو په قبیله کی ښه ښه دینی علما - جنگیالی غازیان او نومیالی سیاسی - ملی شخصیتونه تیر شوی دی اوس هم شته او په راتلونکی کی هم ورته امید شته دی ځکه چی وایی د بازد جالی نه بازان پاځیږی.

د سیکانو او انگریزانو په دور کی یی هم خپل رسالت ساتلی دی او دناخوالو سره یی زبردستی مبارزی کړی دی چی د دی کشمکشونو په دوران کی دخلیلو اربابانو یادنومیالی شخصیتونه یادکړو سره او یاد تجرید په حالت کی بندیان شوی او بیا بهر ملکونو ته لکه افغانستان - هند . جرمنی او داسی نورو ملکونو ته تبعید شوی اوشړل شوی دی او جایدادونه ورڅخه پاتی شوی دی چی په خپل وار باندی به یی یادونه وشی.

د تاریخ په حکم شیخ عبدالرحمن بابا دنن څخه - ۳۱۶ - کاله ترمخه په دی سیمه کی ودان شوی دی او دخلیلو قبیله په دی سیمه باندی پرته ده او لاگورو به داسنادو او روایاتو له مخی خبره داسی شروع کیږی چی د خرشبون د سړبن دځوی ددری واړو ځامنو کند - زمند او کاسی شجری ولیکل شوی لکه چی په شجرو کی یی یاده وشوه دکند دوه ځامن وو شیخا - یاشیخی یاخشی یا خنبی یاد شوی دی او بل ځوی یی غوری یا شیخ ابراهیم و چی اولاده یی غوریا باندی یادیږی د پټی خزانی په حواله چی وایی شرخبون دخبل پلار سړبن او تره بیټ نیکه په ژوند او اجازه دهغوی نه راغلی و ود ارغستان په علاقه کی دغنډال اوسور غره په شاوخوا سیمو کی یی اړولی و اودا هغه ځمکه ده چی غوره مرغه یادیږی ارغستان دکندهار ولایت په جنوب ختیځه سیمه کی پروت دی او

ورپسی ختیځ خواته دمعروف ولسوالی پرته ده او اکثریت په کی دمحمدزایی قبیله پرته او ودانه ده چی دافغانستان خلک یی محمد زایی سرداران بولی.

اخون درونیزه (رح) لیکلی دی چی کله دکندهار ځمکی دهغه ځای د پښتنو په مینځ کی وویشل شوی نودترینو ځمکه دخرشبون (خیرالدین) د اولادی کند زمند یعنی د خانبی خیلو او غوریاخیلو په منځ کی ورسیدلی او دا دواړه ورونه یی یو له بله سره بیل کړل څه موده وروسته دخانبی خیلو او ترینو په منځ کی د ویالی په سر څه جنک جګړه مرګ ژوبله وشوه او خانبی خیل کډی کولو ته مجبور شول او راغلل خپلوورونو غوریاخیلوسره یی واړول او هغوی ورته یو څه ځمکه ورکړه خو یو څه موده وروسته بارانونه زورشول او غوریاخیل په خپله ورشو کی تنګ شول او خانبی خیلو ته یی خپله ورکړی ځمکه بیرته وغوښته خانبی خیلو وریاندی دنه ورکولو ټینګاروکړ او ددوی ترمنځ جنګ جګړه وشوه اوخانبی خیلو بیا کډ وکړی اود کابل په لوری راوکوچیدل په دغه وخت کی دګومل له خوا اتمان خیل هم را کوچیدل یو اودخانبی خیلو سره یو ځای شول اودهغی ورځی نه د خانبی خپلو اواتمان خیلو پره جنبه سره یوه شوه . څه موده پس مامن زی چی د زمند یو څانګه ده دخپلو ورونو نه مرور شول هغوی هم راغلل اودخانبی خیلو سره یو ځای اوملګری شول اوداخلک نور هم غښتلی او قوی شول اود کابل په اورشوګانو کی دیره شول او ښه اسوده ژوند یی کاوه مال او اولادیی هم زیات شو او په دی توګه کی دیوسف او مندو مال او اولاد زیات شو او ددوی قوت څرګند شو. په دغه وخت کی د تیمور په کور نی کی میرزا ابوسعید حکمران و.

هغه د خپله پلوه د کابل په علاقه کی خپل ځوی الغ بیک حکمران کړی و او الغ بیک میرزا په اول کی د دی خلکو سره ښه سلوک کولو او دی خلکو یی هم مرسته کوله میرزا الغ بیک په کال ۱٤٦۹ ع کی د کابل حکمران شوی و او په (۱۵۰۰) ع کی مړ دی او ۳۲ کاله وخت یی حکمرانی کړی ده .

میرزا چی وروسته قوی نه شو نو د دغو پښتنو دومره قوت او زور یی نه شو زغملی په دغه خلکو یی د اطاعت لپاره زور راوړو په نتیجه کی د میرزا لښکر ته دغه خلکو ماتی ورکړه او خاښی خپل بریالي شول د پښتنو د ابدبختی د پخوا ملګری وه او ده چی په خپل منځ کی سره په لړه خبره وران شی او د کام د تباهی سبب شی همدغسی خاښی خیلو او ګر ګیانی قبیلی په منځ کی په یوه ښځه باندی بدی او جنګ جګړی پیښی شوی میرزا الغ بیک هم دی اور ته لمن ووهله او نور هم پسی ډیر شو او د خاښی خیلو سره یی دوستی جوړه کړه او څه موده پس د خاښی خیلو ټولو مشرانو ته یی بلنه ورکړه او میلمانه یی کړل.

د خاښی خیلو ټول مشران چی شمیر یی تخمین (۹۰۰) تنو ته رسیده بی وسلی د غه میلمستیا ته ورغلل یوازی د یوتن محمود محمد جغرزی د زوی سره یوه چاړه پټه په بډه وه . د ګګیانو یو مشر چی چنګا نومیده میرزا ته لمسه وکړه چی دومره پښتانه بیا تاله په لاسکی نه درځی همدا دی وخت دی او دا نن د دوی کار خلاص کړه ، میرزا هم ور ته زړه ښه کړ او دا ټول مشران یی د جرګی په ځای کی راګیر کړل او قیدیی کړل محمود په دغه حال کی هم خپلو مشرانو ته وویل چی له ما سره یوه چاړه شته دی او په دی به زه د الغ بیک کار خلاص کړم خو هغوی د دی کار څخه منع کړ . په دغه وخت کی ملک سلیمان د ملک احمد

تره میرزا نه دوه سوالونه وکړه یودا چې مونږ وژنې نو زمونږ واړه زاړه او زنانه پرېږده چې چرته ځی هلته لاړ شي.

او دوی مه قیده وه او بل زما داورار احمد مه وژنه او دی پرېږده چې ولاړ شي او خپلې کلې ی خوندی کړی.

میرزا دملک سلیمان دا دواړه سوالونه ومنل او نور دوی تول یی مړه کړل او د کابل قطب طرف په سیاه سنګ کې خخ کړل جی دغه مقبره دشهیدانو په مقبره شهرت لری جی دا پیښه اغلبا ( ۱٤۹۰ او ۱٤۸ ع په منځ کې شوی وی.

ددی خونړۍ واقعی څخه څه موده وروسته دخاښې خیلو قبیلی دملک احمد په مشرۍ کی دکابل نه مخ په ننګرهار راو کوچیدل ترکانی په لغمان کی پاتی شول او یوسف زی او مامن زی راغلل په ننګرهار کی میشت شول. څوموده پس یوسفزو او مامن زو په څه خبره سره نښته وشوه او مامن زی یی مات کړل او ډیر تاوانی شول بیا یی تر منځه روغه جوړه وشوه او یوسفزو ننګرهار مامن زو ته پرېښود او دوی تری ښکته پیښور ته راغلل. په دی وخت الغ بیک خپل ملګری ګرګیانی هم دکابل وتلو ته مجبور کړل او هغوی هم ننګرهار ته راغلل او پر دوسره یی دمرستی نتیجه یی ولیدله.

وایی په دغه وخت کی په پیښور ،باجوړ او نورو شاوخوا ځمکو باندی دزړاک چی دکرلانو یوه څانګه ده پراته و او د تاریخ په حواله جی په پیښور او شاوخوا کی د پښتنو قبایلو زیات شمیر خلک پراته وو او ژوندیی کاوه.

یوسفزی دخیبر په لاره پیښورته راغلل اودلهزاکو سره یی د شپیر سنګ په مقام جرګه وکړه اود استوګنی لپاره یی تری ځمکه وغوښتله دلهزاکو د دواوی

ځمکه ورته ورکړه چې ښه ودانه علاقه وه . ملک احمد ورڅخه منته وکړه او ورته وې ویل چې زمونږ نور عزیزان هم را پسې دی او دا ځمکه به زمونږ بس نه شي دله زاکو ورته وویل اشنغر چې هغه وخت د سوات دسلطان رعیت و او تاجک پیری پراته و لو دشاو خوا نوری ځمکې لکه دانشکول او دامبار کځې ان دباجوړ پوری تاسی ته ولې شي . او یوسفزي او منډړ راغله په دواوه پریوتل . خو وروسته نور قام یې هم راغي دچارسدې لرخاته د مردان علاقې ته هم پسې وروغزیدل اشنغر یې هم ونیوا وځینې خلک یې تر باجوړ پوری ورغلل او دلاشوری په دره یې قبضه وکړه او ان د پنجکوړی تر سینده ورغلل.

په دغه وخت کې د تیمور د کورنۍ زوال راغلی و اود پښتنو د رینو د کورنۍ اقتدار وو . ددې اقتدار له کبله غوریاخیل هم مهاجرت ته مجبور شول او ښکته راکوچیدل او مخ په قطب په خانبې خیلو پسې راخوځیدل.

لکه چې دمخه ورته اشاره وشوه په ننګرهار کې ګګیاني او مامن زی او په لغمان ترکاني پراته و . غوریاخیل هم ننګرهار ته راغلل او له دغه قبایلو سره یې ماتي ګوډي پیښې شوی . دغوریاخیلو په راتللو ګګیاني او ترکاني دخان لپاره دبلې علاقې په لټه کې شول . ترګاني ددیری مودی نه دباجوړ په تمه ونو باجوړ ته یې یوه دله سړی ولیږل ګګیاني چې خبر شول ددوي په سیالۍ کې یې خپل سړی باجوړ ته ولیږل خود ترکانو نه یې ماتې وخوړله او بیرته په تیښته راغلل . د ګکیانو تمه چې دباجوړ نه لنده شوه نود مومندو په سلایې خپل مشران او سپین ږیری یوسفزو ته ننواتي ولیږل او دملک احمد نه یې داستوګنې دپاره ځمکه وغوښتله ملک احمد چې یو پوه او باتدبیره سړی و نو ددله زاکو دطاقت په

مقابل کی داغوښتل چی خانبی خیلو ترمنځ یو کلک اتحاد اویو والی جوړ کړی نو هغه دخپلو مشرانو په سلا دګګیانو ننواتی ومنله او هغوی ته یی د دوا وی ځمکه داستوګنی دپاره ورکړه او مامن زوسره یی داشنغرو وعده وکړه.

ګګیانو ته چی داستوګنی لپاره دو اوه په لاس ورغله نو هغوی دغی علاقی ته ورغلل او هلته اباد شول.

لکه چی ترمخه لیکل شوی دی یوسفزو د دهقانانو یا دیګانانو نه اشنغری نیولی وه نو دهقانانو د دره موره په لار دخپل مشر میرهند په مشری سوات ته لاړل او د تاتی خواوشایی واړول. سواتیانو د یوسفزو دمخکی راتلو دمخنیوی دپاره د ملکنډ دره هم ونیوله او دشاه کوټ په دره یی هم قبضه کړی وه او د یوسفزو دمخکی تګ دالاری نیولی وی.

دوعدی سره سم یوسفزو دهشتنغر علاقه مامن زوته ورکړه او مامن زی په اشنغر اباد شول او ګګیانی په دوو اوه میشت شول نو دلزاکو سره یی بدسلوک راواخستلو چی په دی خبره ملک احمد هم خپه شو.

دګګیانو او دله زاکو پرله پسی کشمکش په نتیجه کی جګړی جوړی شوی او دګل بیلی په مقام چی د داودزو په علاقه کی یو کلی دی دله زاکو ګګیانو ته ماتی ورکړه ملک احمد په دی ماتی بیا خپل قام او اولس اتحاد ته چمتو کړ او ددله زاکو سره یوه فیصله کی دجنګ پریکړه وکړه ځکه چی د دله زاکو نه یوسفزی په تنګ شوی وو نو ملک احمد ټول یوسفزی. مندړ - ګګیانی - مامن زی - اتمانخیل او ګدانه سره یو کول او یو لوی لښکر یی جوړ کړ دله زاک هم خبر شول او دجنګ تیاری یی وکړ او جنګ جوړ شو دخانبی خیلو او دله زاکو دا

جنگ دکا تلنگ اوشهباز گرهی ترمنځه وشو او زور ورجنگ دګدر په خوروشو او اتمانخیلو په کی ډیره میرانه وښودله او ددی وجه یو ډول دخرمنی ډالونه وچی دهغی ترشا به تیرانداز را روان و دله زاکو دسنگرکوټ له خوا جنگ ته راووتل.

اخون درویزه (رح) وایی چی دټولو نه لومړی دعلی اسمعیل ځوی چی شیرین نوم یی و دخوړراودنګل اودزنگی ددلهزاک زوی یی وواژه اولاس په لاس جنگ ونښتو.

خود دله زاکو پښه ونښویدله او په تیښته شول.

د یوسفزو لښکری ورپسی وی اودسویل په لوری ددله زاکو لاره بنده کړه نو دله زاکو د لنډی سیند په سویل خپلوعزیزانو ته لاړ نه شول او په اباسین پوری وتل.

ددی جنگ سهی تاریخ خو معلوم نه دی خو قیاس داسی دی چی په (۱۵۱۹) ع نه پسی اود (۱۵۲۵) ع نه مخکی څه وخت به شوی وی.

لکه چی مخکی وویل شول سواتیانو د یوسفزو دحملی له ویری دسوات په لورتللی ټولی دری لکه موره دره ملکنډ - شاکوټ او چرات اونور نیولی وی په دی وخت کی په سوات باندی سلطان ویس حکمران و دا معلومه نه وه چی دادکومی کورنی او څوک دی؟ دغه سلطان دیوسفزو دغلبی نه دساتنی په غرض دملک احمد سره خپلوی کړی وه اودهغه خوریی واده کړی وه د سلطان ویس پایتخت منګوره وه. څه موده پس چی دملک احمد خورمړه شوه اودسلطان ویس سره بیا د یوسفزو نه ویره پیداشوه اودهغی لوی عامل دا و چی یوسفزوپه دله زاکو هم بری موندلی و. اوددغه جنجال نه خلاص و اودسوات

دنیولو په تکل کی و. سواتیانو خپل ډیر زور په موره دره اچولی و او څه لښکری دسلطان ویس په ماتحتی کی په مالکنډ دیره و خوغافل و څکه چی دجنګ تول زور په موره دره ؤ یوسفزو چل وکړو خپل لښکریی شبه په شبه مالکنډ ته ورسولو اودهغه ځای سواتي لښکر یي مات کړ اومالکنډ یی ونیو. میرهنده هم دموری نه دسوات تاتې ته ورغی چی: سلطان کومک وکړی اود یوسفزو لښکر تم کړی.

خو وار دواره تیر و، یوسفزو سوات قبضه کړ او ورویی تول سوات ان دپوران اوچکیسره اوکانړا اوغوربند هم ونیول اودتالاش علاقه یی هم قبضه کړه اودکالنګل په مقام یی دباجوړ لښکر هم مات کړو دا رنګ برنګ علاقه یی ان ترناوه ګی ونیوله نودملک احمد په مشوره او سلاشیخ ملي چی دمنډو په اولس کی دپیرک په ذیله کی یوهوښیار سړی و اودملک احمد په هره ښه بده کی مشاور او ملګری و دنیول شو علاقو دویش بندوبس یی وکړ.

دا علاقه ددواوی اواشنغر نه نیولی دلنډی سیند دقطب داباسین ترغاړی پوری دسمی سوات، بنیراوباجوړ په څه برخه او دیر او نورو ځایونو کیدی شی. دا ویش دډیر تدبیر-فکر - غور او محنت کارواودایوداسی چاکولی شو چی د پوره فکر او تدبیر خاوند و.

په قبایلی مزاج واقف اوددغه ارتی ځمکی دجغرافیوی موقعیت نه ښه خبر وایی اوشیخ ملی ددی لوی کار دکولو قابلیت درلود.

د شیخ ملی ددی ویش څه پوره تاریخ نه دی معلوم خواتکل کیدی شی جی دا به دملک احمد په ژوندانه دکال (۱۵۳۰) ع په شاوخواکی شوی وی. دا کار

په داسې قابلیت او هوښیار تیا شوی دی چې سړی ورته اوس هم تعجب کوی.

د مثال په ډول چرته د یو دوو قبیلو جګړه پرې کیدونکې وه او احتمال یې و دهغوی په منځ کې یې پرته څمکه ستانه داری کورنی. ته ورکړه او د څخبری (سیری) په نامه شوه چې اینده وریاندی دوه قومونه جنګ جګړې ته مجبور نه شي ددی ویش په اثر دوو اوه د ګګیانو هشتنغر مهمند و .او ارنګ برنګ داتمانخیلو ورسېډاود سوات اوسمی په منځ کې قطب نه یوه ټوټه څمکه نوره هم اتمانخیلو ته ورکړې شوه او د ګدانه ته د قطب په لور غریزه علاقه ورکړې شوه.

دشیخ ملی او ملک احمد قبرونه په سوات کې دی لکه چې د ملک احمد قبر په الله ډنډ کې او ویلی شی چې دشیخ ملی قبر په غوربند کې دی.

دخومادنوی کلی درویش خان چې د تاریخ یو مینه وړی هم دی او خپله مورخ هم دی او ریدلی دی چې دشیخ ملی قبر په سوات کې دی او ماته معلوم دی.

دادواړه اشخاص دمندړو د قبیلې څخه وو خو په دی ویش کې بیا څه بدلون راغلی دی چې د سوات – پنجګوړی .بونیر ټوله غریزه علاقه د یوسفزو او مندړ ټولسمی ته راغلی دی داخبره د خان کجو دقبرنه هم معلومیږی داقبر د صوابی دمانیری په منځ دبدری نالی په غاړه دکجوغونډی ته مخامخ پروت دی. هغه مال دمنړو علاقه ورانه اود سوات د یوسفزو علاقه بنه ودانه وه خو نن د منډو علاقه دنهرونو له برکته ډیره ودانه شوی ده د یوسفزو په علاقه کې په سمه او سوات دیر او نورو ځایونو کې شپږ لوی نوابۍ هم وې چې د پاکستان د جوړیدو سره ختمی شوی.

د ملک احمد قبیله مخکې هم د دانشکول او امبار دنیولو په تکل کې وه

دباجوړ د دله زاکو مشرهلته ملک هیبو و او ښه داقتدار خاوند و یوسفزی هلته نه پرېښودل نو یوسفزی مجبورشول اودخلیلو دقبیلی نه جی دغوریاخیلو یوڅانگه وه دمرستی غوښتنه وکړه خلیل په دغو ورځو کی دخپلو ورونو او عزیزانو سره په جنگ جگړو اخته و.

خلیل دیوسفزوسره راپاڅېدل او بل خواته ملک هیبو په خپل قوت او قدرت ډیرغاوره و او په خپله خبره ټینگ ولاړ ، و اویوسفزی باجوړته نه پرېښودل په دی وخت کی مومند چی د غوریاخیلو یوه څانگه وه اوترکانړی دخاښی خیلو ذیله وه دملک هیبو اویوسفزو دجوړی دپاره د جرگی په ډول باجوړ ته ورغلل خودا مرکی بریالی نه شوی اوروغه ونه شوه .

اوملک هیبود یوسفزوسره جگړی ته تیارشو اوجگړه ونښته .

مومند اوترکانړی هم بی طرفه پاتی نه شول اود یوسفزو به مرسته یی ملاوتړله اوورسره ودریدل په جنگ کی دیوترکانړی برهان دلاسه هیبوملک ووژل شو اودملک هیبو زغریبی یومندړ جمال نومی ویوړه اوپه شیردره کی دهغه سره تر ډیری مودی وه .

یوسفزی په دی جنگ کی بریالی شول . او دله زاکو ماتی وکړه خلیلو اویوسفزو باجوړ قبضه کړ . څه موده پس دخلیلو او یوسفزو په منځ کی هم جگړی پیښی شوی اوخلیل په دغه جگړه کی بریالی شول اویوسفزی مات شول اودملک احمد نه یی مرسته وغوښتله ملک احمد په خپلو عزیزانو خپه شو اومرستی ته یی ملاوتړله او دطاقت داستعمال سره یی دسیاست نه هم کارواخیست اوملک میرجمال یی دملک هیبو کورنی ته په ننواتی ورولیږه

هغوی د میرجمال ننواتی ومنله او د یوسفزو مرستی ته هم ودریدل یو خوا د میرجمال او هیبو کورنی، سره یوشوا ولښکر یی باجوړ ته راټول کړ او دبلی خوا ملک احمد هم د بند یلی، او دا ښکول په لاره ترناوه گی، راورسید او دخلیلو او یوسفزو جگړه جوړه شوه او خلیل مات شول او په سوله یی د خلیلو بندیان سره تبادله کړل او دا شرط کیښود ل شو چی دوی د باجوړ دری ته پریږدی.

په باجوړ کی د غوریاخیلو دا جنگ د پیښور په وادی، او خواوشا علاقو کی د قبایلو د مهاجرت اغاز و . د غوریاخیلو د پاره چی د باجوړ مخه بنده شوه نو دوی هم د خاښبی خیلو په پله روان شول او د خیبر په لاره پیښور ته راغلل دا علاقه لا تر دغه وخته پوری د خیبر نه ترخیراباده پوری د دله زاکو په ولقه کی وه .

خلیلو او مومندو هم د دله زاکو نه داستو گنی د پاره څه ځمکه وغوښتله دله زاکو چی څه ښیکنه د یوسفزو سره کړی وه او نتیجه یی بدی لیدلی وه هغه لا ورته یاده وه نو دوی ته یی انکار وکړ.

خلیلو او مومندو د میرزا کامران څخه چی د بابر ځوی و او په کابل حکمران و د کومک او مرستی غوښتنه وکړه میرزا کامران دخپل ورور همایون نه چی د بابر بل ځوی و او د هغه پرځای پاچا شوی و د حملو د ویری نه د یوی قبیلی احسان منده کول د ځان لپاره گټور وبلل نو د هغوی کومک یی وکړ خلیل او مومند د دله زاکو په مقابل کی بریالی شول.

نو دلته دا ویلی شو چی پیښور ته د خلیلو او مومندو ورتگ چی د میرزا کامران په وخت کی شوی دی نو دا به ( ۱۵۳۰ ) ع او ( ۱۵٤۵ ) ع په منځ میانه زمانه کی شوی وی.

خلیل دخیبر په خوله کی پراته دی او ددوی مشران دار یابانو په نوم یادیدل او یادیږی او دا پیر دوسره ښی اړیکی لری.

دلتـه ددی خبری یادونه ضروری ده چی ووایو پښتنی او واقعـات چی مورخینو او تذکره لیکونکو رانقل کړی دی دا هغه واقعیتونه دی چی انکار ورڅخه گناه ده ولی د کمیت او کیفیت په لحاظ ممکن څه لاندی باندی په کی وی ځکه چی د ادوارو په لړو کی ارومرو په پیښو اثر پریوزی او توپیر په کی رامنځ ته کیږی په خاص ډول د سنواتو تخمین او اټکل دیوه لیکونکی او مورخ لپاره ترهر څه زیاتی ستونزی لری. ځکه چی قبیلی او اولسونه په جگړو اخته و پوهه - درایت لیک لوست ډیر کم او په ځینو وختو کی باالکل نه و نو ځکه په دی باب لیکونکی او مورخ په شک او تردید کی لویدلی دی ولی د وخت او زمانی او یا د ځینی سپین ږیرو د قول په بنا ورته یو معیار قابل شوی دی او پر ځای اټکل یی کړی دی چی په دی وجه پیښی او واقعی تایدولی شی.

دا خبره ثابته ده چی د خلیلو قبیله د سړبن بابا د شجری د خرشبون (خیرالدین) په سلسله کی د غوریا (شیخ ابراهیم) اولاده او په نهایت کی ویلی شو چی شیخ عبدالرحمن د خلیل د ځوی باروزی ځوی دی او د (۱۰۳۰) ع (۱۵٤۰) ع او یا (۱٦۸۳) ع پرشاوخواکی پیښور ته راغلی ده.

سربند - لنډی - سپینه وری تهکالو نو او داسی نورو سیمو کی ودامن شوی دی او تر ننه دعزت ژوند تیره وی.

ددی قبیلی خلکو دچاداسارت یوغ په اوږه نه دی پریښی دظلم بی عدالتی غلامی په ضدیی مبارزه کړی ده دانگریزانو داستعمار په ضد یی مبارزه کی

پوره برخه اخیستی ده چی ... ک شهیدان شوی دی او څوک یی دوطن څخه نورو هیوادو ته فرار کړی دی لکه شهید ارباب بهرام خان ارباب شهید عبدالمجید خان - ارباب رضاخان - ارباب عبدالله خان (عرف حاجی بابا) او داسی نور ډیر چی وروسته به یی په تفصیل سره یادونه کیږی او زما ددی مدعی د ثبوت لپاره کافی دی چی دا قبیله یو ځلانده تاریخ لری او تر ننه یی د خپلو اسلافو د قبرونو شناختی لوړی ساتلی دی.

په دی قبیله کی زبردست دینی روحانی - ملی - علمی -سیاسی -نظامی شخصیتونه تیر شوی دی چی دا قبیله وربandی ویاړی او وروسته به ورباندی په تفصیل رڼا اچول کیږی.

دشیخوخت وصف ډیر باتقوی پرخدای (ج) اودخدای (ج) په رسول مینو اشخاصو ته ورکړ کیږی غوریا دشیخ ابراهیم) ته چی دشیخ لقب ورکړ شوی دی ثابته ده چی نو موړی یو متدین شخصیت تیر شوی دی همدا راز شیخ عبدالرحمن بابا ته هم دا افتخار حاصل دی اودا دوه تنه به کافی وی چی دنمونی په ډول یی دزهداو تقوی مثال وړاندی کړم.

ارباب بهـ ! ...ن شهید - ارباب رضا خان - ارباب محمد خان- ارباب عبدالغفورخان شهید ارباب عبدالمجید خان - ارباب احمدخان - ارباب نیازمحمد خان کرنیل - ارباب نور محدم خان کمیشنر ارباب خان بابا عبدالروف خان پولیتکل -ارباب محمد عمرخان - ارباب عبدالقدیرخان - ارباب محمد صدیق خان - ارباب جنرال محمد سعید خان - ارباب محمد ابراهیم خان - ارباب سردار خان . ارباب عابدخان - ارباب خلیل خان - ارباب

زاهد خان - ارباب عبدالحمید خان - ارباب زین خان - ارباب عبدالمجید خان - ارباب عبدالله خان داتول هغه ملی -سیاسی شخصیتونه دی جی هر یو ځان ته کار نامی لری او په لیکنه یی کتابونه لیکل کیږی او مایی پوازی په یادونه کفایت کړی دی او ځینو په باب په وروسته کی یوڅه لږ و ډیره یادونه وکړم .

ارباب جمع خان - ارباب محمدعظیم خان - ارباب عبداللطیف خان - ارباب عبدالرحمن ارباب عبدالله خان مشهور په حاجی بابا دافغانستان دننگرهار دولایت د ښیوی ولسوالی دشگی په منطقه کی خخ دی .اوداخلک ددی قبیلی دینی علما او روحانی شخصیتونه دی جی د وطن او اسلام دغدارانو سره یی په ژبه او لاس جهاد کړی دی او خپل فرض یی تر سره کړی دی.

دمعاصرو او ننی دوری یادشخصیتونه چی ددی قبیلی افتخارات دی او اکثریت په جهانی سطح شهرت لری لکه مرحوم شهید ارباب سکندر خان (خلیل ) ارباب جهانگیر خان (خلیل ) ارباب محمد همایون خان (خلیل ) ارباب سیف الرحمن خان (خلیل ) ارباب محمد یاسین خان (خلیل ) او داسی نور چی وروسته به وریاندی تفصیلی لیکنه وشی.

د یادو شوو اشخاصو پیژاندگلوی په لوړه سطح باندی موجوده او په خپلو خلکو کی دخاص اعتماد او باور څخه برخورداره دی او زیات خدمتونه یی کړی دی . ددی قبیلی په خلکو کی لوړ - علمی -سیاسی - اجتماعی استعدادونه شته دی او په دولتی پوستونو کی په عملی کارونو بوخت دی.

ډاکتران- انجنیران - حقوق دانان -فوځیان اودینی عالمان د ن قبیلی د افتخار وړ شتمنی ده او په مادی لحاظ هم اکثریت بډای دی او اسوده ژوند لری

اوخپل قبیلوی خصوصیات او اعتبار ته درناوی لری او په هر نماینده حکومت کی په وفاقی اوصوبه یی سطح برخه لری.

شیخ عبدالرحمن بابا مرحوم دبر تهکال په ادیره کی په ډیر عزت په ابدی آرام گاه کی خاورو ته سپارل شوی دی چی ددی کتاب په پشتی باندی عکس خپور شوی دی نوموړی د پوره تقوی خاوند یو شخصیت تیر شوی دی د تصوف اوشیخوخت داوصافو په درلودلو سربیره یو غازی اومجاهد مسلمان و چی دنفس سره په جهاد سر بیره چی اکبر الجهاد دی داسلام او وطن ددښمنانو سره یي هیڅ ډول سازش نه دی کړی روح دی ښاد او آرام وی.

ددی کورنی یو شمیر غړی دانگریزی سامراج او یا نورو طاقتونو په مقابل کی دمبارزی په تور بندیان شوی وژل شوی او حتی نورو هیوادونو ته تبعید او فرار شوی دی چی بمبی -جرمنی - استرالیا اوگاونډی هیواد افغانستان کی ژوند کوی او لوی لوی کورنی ورڅخه جوړی شوی دی. دمثال په ډول ارباب سیف الرحمن خان دکنړونو دولایت مربوط د تېښي په کلی کی ودان و چی بیا میراث شو او څوک ورڅخه نه دی پاتی.

دڅوکی په ولسوالی کی یو کور چی د ښیوی دولسوالی مربوط دشگی دکلی دارباب عبدالله (حاجی بابا) مرحوم کړوسی کیږی فقیرالله (صاحب حق) ودان دی او ژوند کوی. دڅوکی دولسوالی مربوط دنورگل په علاقه داری کی د خلیلویه کورنی چی مشهور غړی یی مرحوم نورالهدی خان (خلیل) دډگروال (بریگیډ) په رتبه وفات شوی دی ډگروال مرحوم غلام عمر (خلیل) جنرال غلام احدخان «خلیل» مرحوم جنرال سمیع اله (خلیل) مرحوم

ډ ګروال لطف اله خان (خليل) چې په خپل وخت او زمان کې يې د قدرو ړ خدمتونه کړي دي او په دولتي مهمو پوستونو کې يې دندې اجرا کړي او د وخت دحکومتونو دخاص باور څخه برخورداره خلک ؤ.

د مرحوم ډګروال نور الهدی خان ځوی شمس الهدی (شمس) چې دافغان ملت دګوند د يوې برخې مشر دی دخليلو دقبيلې زلمی مبارز دی او په هر لحاظ لوړ افتخارات لري.

دنورګل دعلاقه دارۍ مربوط د (پتڼ) په کلي کې اکثريت خليل اباد دی او مرحوم ارباب ګلستان اکا ددې کلي دخلکو يو معزز سپين ږيری تيرشوی دی .اوقاضي حضرت ګل (حسامي) هم ددې کورنۍ د لوړي زده کړې ځوان دی.

دننګرهار دولايت مربوط د بنيوې دولسوالۍ مربوط دشګی په کلي کې دمرحوم عبدالله بابا عرف حاجی بابا ورثه چې دمرحوم عابدخان بابا ځوی دی يوه لويه کورنۍ ورڅخه جوړه شوې ده يو کورې په څوکې اويو کوري په لغمان ولايت کې آباد دی.

په دې کورنۍ کې ډير لوړ علمي - سياسي -ملي او اجتماعي شخصيتونه تيرشوي اوشته دي چې د اولسي او دولتي خاص اعتماد او اعتبار څخه برخورداره وا و دي يوه کورنۍ چې يې د کنړ دولايت دڅوکې د ولسوالۍ ددیوه ګل د چمبل په کلي کې ودان و او اوس ددغه ولسوالي په فقيرکوټ نومې کلي کې استوګن دی دمرحوم شيخ صابرالله کورنۍ ده ارباب فقيراله خان (صاحب حق) چې دانګريزانو سره يې شخصاً دوه واري دخپل اولس په ملاتړ په ناقي اوګنداو کې جهاد کړی دی علمي او روحاني شخصيت دی او په اولسی

او دولتي سطح د خاص اعتبار څخه برخه لري.

دده په کورنۍ کې قاضيان - څارنوالان - وزيران او فوځيان روزل شوي او د دولت په مختلفو پوستونو کې په کار بوخت و او دی لکه قاضي مطيع الله چمبلي - نجيب الله څارنوال - عبدالرب څارنوال - عبدالغني د معلولينو او شهيدانو دوزارت سرپرست تورن عبدالمعبود - تورن مصباح الرب او تورن محبوب الرب پيلوټ د دې کورنۍ علمي افتخارات دي.

د دې کورنۍ يو غړی ارباب عبدالهادي (خليل) د خپلې کورنۍ سره د پيښور د پجګۍ د مقصود آباد په نوي کلي کې ېدان دي.

د ننګرهار د ولايت مربوط د کامې د ولسوالۍ د اربابانو په نوم کلي کې يوه کورنۍ ودانه ده. حاجي خليل او علاقه دار غلام حسين خان ارباب د دې کورنۍ مشران دي او په دې کورنۍ کې يو ځوان چې زلمي خليل نوميږي د حاجي خليل ځوی دی حاجي خليل په خپل وخت حاکم (ولسوال) تېرشوی دي او ارباب غلام حسين خان هم يوه دوره علاقه دار (تحصيل دار) پاتې شوی او په خپل اولس او دولت کې د خاص اعتبار لرونکی خلک دی. او د ارباب نظام الدين خان ځامن دي.

په همدې ترتيب د ننګرهار د ولايت د مربوط د غني خيلو د لوی ولسوالۍ مربوط د ګولای په کلي کې اربابان او سيږي چې په منطقه کې د خاص نفوذ او

اعتبار لرونکی دی ارباب محمد طاهر (خلیل ) ددی کورنی اوسنی مشر دی جی په خلکو او دولت کی کامل اعتبا رلری.

په همدي ترتیب په لوگر کی د مرحوم محمد صدیق (سهلان) کور نی چي ډیرو لوړو تحصیلاتو خاوند و او په دولت کي د اسلامي شوونو وزیر پاتي شوي او د مصر د سکندري په پوهنتون کي یې لوړي زده کوي کړي وي روح دي ښاد وي ددي قبیلي څخه و.

په کوهدامن - بدخشان - لغمان او کندهار د مومندو په رباط کي هم ددي قبیلي کورنی ودانې دي او د کنړونو دولایت د حکیم آباد په کلي کي هم یو کور آباد دي او په همدي ترتیب دخاص کنړ د منگوال په کلي کي یو کور شته دي او غیري یې د لوړ وزده کړو خاوندان دي او پلاریې د ښې مدرس عالم تیر شوي دي. لکه چي د مخه مي ورته هم اشاره کړي ده دوختونو په تیریدو سره د ځینو کورنیو څخه داقلیت په وجه په نورو کامونو کي ځانونه ورک شوي دي او دهغه اکثریت تراغیزي لاندي راغلي دي چي په کي اوسیږي ولي داخبره عارضی وي او نوري قبیل جي اکثریت دي دوي په ځان نه راتپي البته کور کلي مړي ژوندي ورسره کوي ولي خپل کام او قبیله یې نه بولي او نه یې بللي شي ولي په کرار خپل هویت ورکوي او دا هغه ډول خلک دي چي یا خود ناداری په گرداب کي غرق شوي دي او یا د بي علمي دریاب - لاهو کړي دي .

البته ددي خبري د پاره کافي مثالونه شته دي خو يادونه يې ضروري نه بولم.

دا دنيا دا رهت منگوټې دي يو ډکيږي او بل تشيږي او د آدم نه تر دي دمه

دالړې همداسي روانه ده او لا گورو به چي ترکومه ؟

# اورمړ ( عمرالدین )




لکه مخکی چی لیکل شویدي د شرخبون مشر ځوي شېراني و خو پلار بې دمشرۍ پګړی ترېن ته ترلي وه نو شيراني په دی خبره خپه شو د پلار نه مرور شو دخپل ماما کاکړ کره لاړاوددي وجهي نه شيراني دکاکړو سره ګډ شو او ښه بده بې دغرغښتو دقبيلي سره يوه شوه .

د شيرانو علاقه دګوملی دري سويل ته پرته ده او کوه سليمان کسی غر هم ددوي په علاقه کي دي ددي علاقي قطبي برخه بې حسن خيل ، منځ کي بې ابوخيل او جلواني اوسوېل ته يي کبهپ او هربپال تپي استوګني دي. اودکسی غره په قبيله کي دکوس په غرونو کی کاکړ مېشته دي.

دوزيرو دعلاقی په څير دا علاقه هم پلنه اوغريزه ده خود کرکروندی ځمکه په کی لږه ده داداستانو نه څه دومره لنډ نه دی په هر بوه باندي کتابونه ليکل شوی دي او لاليکل کېږی به . هغه دفارسي ژبی بو شاعر ويلي دي :

**صد سال ميتوان سخن از زلفـی يار گفت**

**در بند آن مباش که مضمون نه مانده است**

تور خو لا نور خو که یوازی سري دنسیم حجازی ناولونه او داستانونه ولولي نوورته جوته به شي چي په دي خاورین او گردجن جهان څه تیر شوي دي؟

د روم او قیصر سلاطینو څه کړي دي او بیا دصلیبي جنگونو ترخي خاطري راپادي کړو اوورپسي دچنگیزي مظالمو تورتاریخ ته په څیر شو او ددوی نه وروسته دانگریزي سامراج او روسي تاړاک خاطري دانسان غوږونو زېږوي او کرکه بي راځي خوداچي په اسلام وطن او پښتو مینو مسلمانانو په دي لاره کي څومره قرباني ورکړي دی دا هم د تاریخو - یادگارونو - ناولونو او داستانونو ځان ته ځانته ځلانده فصلونه اوبابونه دي. خو اي کاش څه شو هغه په خداي (ج) دهغه په رسول وطن او پښتو مین مسلمانان چي نن سبا یي کفري طاقتونه په تباه کولو نه جوړېږی او په یوه نامه اویل نامه یي سره په خپلو منځو کي اچوي او خپل زوړتاو پري سره وي»

«لیکونکي یوسوز او احساس»

ترېن - ابدالیان - بریڅ او داسي نور ډیر جدا جدا عنوانونه چي هریو په خپل وارکورنۍ اوقبیلي جوړي کړي دي او که په اختصار سره وربانډي څه وویل شي پر ځاي خبره به وي ولي که څوک وغواړي چي په هر یوه باندي په تفصیل سره څه ولیکل شي نو بیا خو ورته کافي وخت ضرورت دی او هره موضوع یي یو کتاب دی.

په هر وخت او زمان په دي باب لیکني شوي دي ځیني دشک او تردید سره اوځیني په مستند ډول لیکل شوي دي. دمنلو خبره همدا ده چي اغلباً هره لیکنه ارومرو یو بنیاد لري اولیکوال - تذکره لیکونکي یا شجره نویس دځانته څه

